**عنبري** (ʕanbarí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) دعنبر، په عنبر اړوند؛ ۲) ښه بوی لرونکی، عنبرین.

**عندليب** (ʕandalíb) نر. م. چونی، بلبل، بلبله.

**عنصر** (ʕunsúr) نر. م ۱) اصل، آر؛ ۲) ماده، بسيط جسم؛ ۳) عناصر اربعه: باد، خاوره، اوبه او اور؛ ٤) ک. هغه جسم چې تول لـه هغـو اتمـو څخه جـوړ شوی وي چې يو اتومي عدد لري.

**عنعنه** (ʕanʕaná) ښځ. م. (ج. عنعنې) ۱) روايت، نقل؛ ۲) دود، رسم، رواج، دستور، عرف، لاره، تره.

**عنقا** (ʕunqā́) نر. م. ورک مرغه، «سيمرغ»؛ يو افسانوي ستر مرغه دی.

**عنقريب** (ʕanqaríb) ق. ژر، ژر به... نـېږدې، ژر تر ژره به...

**عنکبوت** (ʕánkabut) نر. م. و گ. غنې.

**عنوان** (ʕ(u,ı)nwā́n) نر. م. ۱) سرليک، سرنامه؛ ۲) سريزه، مقدمه؛ ۳) نښه، نښاني، پته.

**عواطف** (ʕawātíf) ښځ. م. ۱) د عـاطـفه جـمـع؛ ۲) انفعال (خوښي او وير) چې ډېر لږ په مجرده او بسيطه توگه پاته کېږي.

**عوام** (ʕawā́m) نر. ج. د (عامه) جمع، وگړي، خلک؛ د يوې تولنې يا هېواد اکثريت.

**عوام فريب** (ʕawā́mfaríb) ص. نر. م. ج. عوام غولوونکی، دخلکو تېرايستونکی، ديماگوگ.

**عوامل** (ʕawāmíl) نر. م. دعامل جمع ۱) کاريگران؛ ۲) دکار غوايان؛ ۳) فاکتورون.

**عوامي** (ʕawāmí) ص. نب. نر. ښځ. م. ج. ولسي وگړنيز، د خلکو، د وگړو، د عوامو.

**عود** (ʕud) نر. م. ۱) لـرگی؛ ۲) لـه ونې څخـه پرې شوی ښاخ؛ ۳) دهند و هندوچين د سيمو يو ډول ونه ده چې له لرگي څخه يې د سوځېدلو په وخت ښه وږم ولاړېږي؛ ٤) د موسيقي يوه تاريزه او ليندۍ والا آله ده.

**عورت** (ʕawrát) نـر. م. ۱) پټ ځـای، شرم ځای؛ ۲) تناسلي آله؛ ۳) ښځه.

**عورته** (ʕawráta) ښځ. م. و گ. اورته.

**عوض** (ʕıwáz) نـر. م. ۱) بدل، الش، يو شی د بل شي په بدل کې ورکول؛ ۲) بدل، موخې.

**عوضي** (ʕıwazí) ص. نب. نر. ښځ. م. ۱) ځـای ناسـتی، جانشيـن؛ ۲) مـوخې؛ ۳) په عـوض اړوند.

**عهد** (ʕáhd) نر. م. ۱) ژمنه، قول، وعده؛ ۲) تړون، بندن؛ ۳) زمان، روزگار؛ ٤) وفا؛ ٥) قسم.

**عهدنامه** (ʕáhdnāmá) ښځ. م. تړون ليک، بندن ليک، د قرارداد پاڼه، لوزنامه.

**عهده** (ʕuhdā́) ښځ. م. ۱) ذمه، غاړه؛ ۲) کفالت؛ ۳) مسووليت؛ ٤) تړون، پيمان؛ ٥) مج. وظيفه.

**عيادت** (ʕıyādát) نـر. م. د ناروغ ليدو تـه تگ و د ناروغ پوښتنه کول.

**عيار**[1] (ʕıyā́r) نـر. م. ۱) امتحـان، ازمېښت؛ ۲) دسرو يا سپينو زرو د اندازې سنجولو مقياس.

**عيار**[2] (ʕayā́r) ص. نر. ج. ۱) څوک چې ډېـر تگ وراتگ کـوي؛ ۲) چمباز، تگ؛ ٤) په منځنيـو پېړيو کې زموږ دهېواد يوه ډله چې کاريې ځواني کول، له ځانه تېرېدنه او کله د مذهب د اصـولو يا فروعو سره لېوالتيا نه درلودل.

**عياش** (ʕayā́š) ص. نـر. م. ج. عيـشي، ميله باز، ميله يي، چرچه يي.

**عياشي** (ʕayaší) ښځ. م. ۱) چرچي، ميلې، عيش کول؛ ۲) وزگارتيا، لوچکي.

**عيال** (ʕayā́l) نر. م. (ج. عيالونه) ۱) ربغړ، بال بچ، ښځه او اولاد؛ ۲) ښځه، ماندينه، کده.

**عيان** ( ʕ(a,ı)yā́n ) ص. نر.م. ج. ۱) اوڅار، جوت، څرګند؛ ۲) په لېدلو باندي يقين؛ ٤) معاينه.

**عيب** ( ʕayb ) نر.م. (ج. عيبونه) ۱) نقص، نقصان، بدي، نيمګړتيا؛ ۲) بدنامي؛ ۳) ګناه.

**عيبجن** ( ʕaybján ) ص. نر.م. ج. ۱) عيبناكه، عيبي، نقصاني؛ ۲) مضر، ضررناكه.

**عيد** ( ʕid ) نر.م. ۱) اختر؛ ۲) جشن، د جشن ورځ.

**عيدګاه** ( ʕidgā́h ) ښځ. م. اخترځی، هغه ځای چې په هغه کې د اخترونو لمونځونه کېږي.

**عيسويت** ( ʕisawyát ) نر.م. مسيحيت، عيسايت، د کريشتانيانو دين، نصرانيت، د حضرت عيسی (ع) دين، عيسوي دين.

**عيش** ( ʕayš̌ ) نر.م. ۱) مزې، عشرت، چړچې؛ ۲) ژوند، ژوندون.

**عين** ( ʕayn ) نر.م. ۱) سترګه؛ ۲) د «ع» د توري اواز؛ ۳) ذات، نفس؛ ٤) خالص، واضح؛ ٤) چمتو؛ ۵) ص. نب. عيناً، عيني، کټ مټ، بشپړ، ورته، يو، يوشان؛ ٦) چينه.

**عين اليقين** ( ʕaynulyaqín ) نر.م. ۱) په سترګو د يوه شي ليدنه او د دې شي ماهيت په يقين سره درک کول؛ ۲) تص. د لوی ښتن تعالی د ځينو صفتو د تجلياتو شهود.

**عينکې** ( ʕaynáke ) ښځ. م. ج. سترګې، عينک، چشمې، چشمکې.

**عيني** ( ʕayní ) ص. نب. نر.م. ج ۱) په عين اړوند؛ ۲) سکه، سکنی؛ ۳) فل. مادي، په سترګو د ليدو وړ، آبجکتيف، آبژکتيف، آفاقي، د ذهني ضد.

**عينيت** ( ʕaynyát ) نر.م. ۱) په سترګو د ليدني حالت، آفاقيت، د ماديت وصف؛ ۲) کټ مټ والی، يورازتوب؛ ۳) من. د عينيت او ذاتيت مبدا، د تفکر يو پرنسيپ دی.